

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# هنـــــــــر

## اووم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هـ. ش

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر ډیپارټمنټ د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډیټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراگانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږگوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وگړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لړلیک

۱ لوست

# کرښه یا خط

## خط څه شي ته وايي؟

## په خپل چاپېريال کې کوم خطونه وينئ؟



د کاغذ په پاڼې يوه کرښه وکاږئ. هغې ښيې ته چې د پنسل له نوکې څخه پر سپين کاغذ پاتې کېږي، ټکی يا نقطه ويل کېږي. د يوه کاغذ پر مخ د انسان د لاس حرکت خط جوړوي چې د ټکو يا نقطو مجموعه ده. که د دوارو لاسونو ورغوي سره و نښلوو، د دوارو لاسو تر منځ يو نوی خط ليدل کېږي. که لاسونه سره جلا کړو، هغه له منځه ځي. د ځمکې او آسمان ترمنځ يو خط ليدل کېږي چې د ((افق)) په نوم يادېږي. دا خط د سمندر په خواکې په ښه توگه د ليدلو وړ دی. هر څومره چې کښته او پورته ولاړ شو، د سمندر خط هم زموږ سره ځي او راځي. له دې امله د افق خط د انساني ديد د





(۱ انځور) مستقيم خطونه)

ارتفاع له نظره تغیر کوي. د بېلو بېلو شیانو او موجوداتو په ځنګ کې يو خط ليدل کېږي چې کولای شو د هغه په واسطه د هر شي شکل وښیو. کولای شو چې غر، الوتونکي، مڼه، کور، موټر، کښتۍ، الوتکه او داسې نور په بېلو بېلو خطونو وښیو.





(۲تصویر)مات شوي خطونه

هغه خطونه چې موږ په خپله شاوخوا کې وينو، مختلف ډولونه لري. کولی شو چې هغه په درو برخو وويشو. ۱- مستقیم خط ۲- منحني خط
۳- منسکر خط (مات شوی خط) ۱- ۲- ۳- شکلونو ته وګورئ.





(۳ شکل) منحني خط



## تمرين

۱-په طبیعت او خپل چاپېریال کې د مستقیمو خطونو، ډولونه پیدا کړئ.

۲-د منحني خطونو نمونې په طبیعت او خپل چاپېریال کې پیدا کړئ.

۳-بېل بېل منکسر خطونه په طبیعت او چاپېریال کې ولټوئ.

٤-د عمودي، افقي، مایل او مستقیمو خطونو نمونې په کومو ځایونو کې وینئ.

۵- ډول ډول خطونه چې مو پیدا کړل، بیا یې سره پرتله کړئ.

## ۲ لوست

# په خطونو انځور ګري
## آیا د انځورولو لپاره په لومړي سرکې باید ځانګړې موضوع په پام کې ولرو؟



د خطونو په مرســته ښــکلي شکلونه انځورولای شــو. یو ساده خط انتخاب کړئ او هغه د نورو خطو نو په مرسته داسې بشپړ کړئ چې ستاسې د خوښې انځور رسم کړي. د دې کار لپاره د خط شکل او د هغه حالت ته باید په ډېر غور او دقت پاملرنه وکړئ.

د خطونو په لیدلو دکوم شــکل په فکر کې لوېږئ؟ د نورو خطونو په زیاتولو ســره یو شــکل رســامي کړئ، تر څو هغه شی چې تاســې په خپل ذهن کې مجسم کړی دی، ووینئ.

ددې کار لپاره کولی شئ، خپل کاغذ بېلو بېلو خواوو ته تاو کړئ. کیدای شي چې له کومې بلې زاویې څخه یو مناســب شــکل پیدا کړئ، وروســته هڅه وکړئ چې هغه د خپلې خوښې په شکل بدل کړئ.

بیا د هغې د بشــپړولو لپاره د موضوع جزئیات په لومړني خط ور زیات کړئ او خپله طرحه بشپړه کړئ. بیا هغه په خپله خوښه رنګه کړئ.



## تمرین

۱-په بېلو بېلو منحني خطونو د خپلې خوښې شکل رسامي کړئ.

۲-د مات شویو خطونو (منکسر)څخه په ګټه اخیستنه ډول ډول شکلونه انځور کړئ.

۳-د عمودي، افقي، مایل او مستقیمو خطو څخه ابتکاري شکلونه جوړ کړئ.

## ۳ لوست



(۱ انځور) د عاج له جنس څخه د میزبوه وړه پښه .

# د افغانستان د هنر تاریخ
## د افغانستان د لرغونو آثارو په هکله معلومات لرئ؟

د افغانســتان ډېر پخواني انســاني وســایل د ((ډبرو په لومړۍ))دورې پورې اړه لري چې د غزني د((ناور))په دښــته کې کشــف شــوي دي. دا وسیلې د اوبســیدان او چقمق له ډبرو څخه جوړې شــوي دي چې تاریخ یې له میلاد نه مخکې سلو زرو کالونو ته رسېږي.

(۲ انځور) په بگرام کې دلاس ته راغلو اثارو اندازه (CM ۳ ۷ ۸

تیرونه، د ډبرو هستې او تېرې ډبرې یا په طبیعي شکل او یا د انسان په لاس جوړې شوي او په کار وړل شوي دي. د دې وسیلو جوړول د ډیرو پخوانیو زمانو انساني مهارت شمېرل کېږي.
د ډبرو د منځنۍ دورې ټولنې په غارونو کې اوسیدې.
د انسانانو د ژوندانه ارزښتمن آثار چې د سمنگانو د ((اق کپرک))او ((هزار سوم)) په غارونو کې پیدا شوي دي، په زړه پورې آثار دي چې د ډبرو په منځنۍ دورې پورې اړه لري. دا په افغانستان کې د لومړنیو انسانانو د ژوندانه ډېر په زړه پورې آثار دي. په دې غارونو کې د کار په وسیلو سربیره د خطونو او نقاشیو نمونې هم لیدل شوي دي. ځینې پوهان په دې باور دي چې دا پېچلي او په یو بل پورې تړلي خطونه په افغانستان کې د نقاشۍ او رسم الخط


(۳ انځور) د مرمررو په ډبرو کې کیندل شوی.

لومړنۍ نمونې دي چې په دې غارونو کې کشف شوې دي.
ددې آثارو تاریخ له میلاد څخه مخکې د شلو زرو نه تر پنځو سو زرو کالو پورې رسیږي. د بدخشان د کور په دره کې ځینې کشف شوي هنري آثار د ډبرو په نوې دورې پورې اړه لري. په دې دوره کې په صیقل شویو ډبرو سربیره د مذهب علامې هم لیدل شوي دي. د مړو د ښخولو له طریقې څخه یې داسې معلومیږي چې د دې حوزې انسانان د عقیدو او معنوي مراسمو درلودونکي وو.

د انســانانو ذهني پراختیا، د باورونو ایجادول او عقیدې په حقیقت کې د ډېرو پخوانیو هنري آثار، لکه: نقاشــي، مجســمه جوړونه او بېلا بېل ســفالي لوښــې د((منديگک))په اثاروکې کتلای شــو.
منديــگک یوه لرغونې ســیمه ده چې د کندهار په شــمال لویدیځ کې پرته ده. د دې لرغونې ســیمې په اثاروکې ختینې مجســمې او سفالي لوښې چې په هندسي منظمو انځورونو ښکلي کړای شوي دي او د معمارۍ هنر کشــف شــوی دی چې تاریــخ یې له میلاد څخه مخکې درې زره کالونو ته رسیږي.
د فاریــاب ولایت د ((داشــلي)) په ســیمه کې د مهرونــو او وزنونو کشــف کېــدل د هنــر د پراختیا ښــه ثبــوت دی دا مهرونه په ډېر مهارت سره جوړ شوي دي. کورنیو مهرونو د امیرانو له مهرو سره توپیر در لود. د دې کشف شوو آثارو تاریخ له میلاد څخه مخکې زرو کلونو ته رسیږي.
د بلخ په ((ای خانم))کې د ښیښو جوړولو او په هغې کې د نقشونو د انځورولو مهارتونه په افغانســتان کې د هنــر د پراختیا یو بل پړاو بلــل کېږي. ســربیره پردې پــه بلخ او ای خانم کې پــه زیاته اندازه ښیښــه یې گیلاسونه چې شــاوخوا یې په ښکلو او رنگه نقشونو او انځورونو ښــکلي شوي، کشف شوي دي. په همدې سیمه کې یو ورزشــي لوبغالی (ســتدیوم)چې په څلور ضلعي تیږو باندې فرش دی، کشف شوی دی. هغه څه چې دای خانم دریځ له نورو ساحو څخــه جلاکوي دا دی چې د لومړي ځــل لپاره د یونان او یونان- باختري هنر د مجســمو په جوړولو کې د ودانیو د کار وســیلې، د ښــکلا ســامان او الې لیدل کېږي چې د هغو تاریخ له میلاد څخه وړاندې لومړۍ او دویمې پېړۍ ته رسېږي.
((طلا تپه)) د افغانستان یوه بله لرغوني سیمه ده. له طلا تپې څخه



(٤ انځور)لاس بند د حیوان په انځور
•بدخشان)



(٥ انځور دجواهراتو صندوق دعاج
کندن کاري

په ښکلو ښایسته ډیزاینونو جوړ شوي .
له یوویشتو زرو څخه زیات طلایي آثار کشف او تر لاسه شوي دي. دا هنري آثار ډېر زيات ارزښــت لري. د ونو پاڼې، د هوســـې مجســـمه، ډول ډول لاس بندونه چې په لاجوردي غميو ښــکلي شــوي دي، پــه دې لرغونو آثارو کې شامل دي.

یــوه بله ســيمه چې د افغانســتان د هنر پــه تاریخ کې ځانګړی ځــای او ډېر ارزښت لري، هغه د باميانو سيمه ده، د باميانو ولايت د افغانستان په مرکز کې پروت دی. د بودا لويو مجسمو چې په ټوله نړۍ کې ساری نه لري، دې سيمې ته ښکلا ور بخښلې وه چې د ((صلصال))او ((شمامه))په نوم يادېږي. نوموړي آثار ددريمې او څلورمې ميلادي پېړيو شــهکارونه دي. دا لويې مجســمې د ګندهارا او يونان- بودايي ګډ هنري ترکيب دی. په نړۍ کې د لومړي ځل لپاره د باميانو په مغارو کې د انځورولو په موخه له روغني رنګ څخه ګټه اخيستل شوې ده.

په بګرام کې د کشــف شــويو آثارو هنري ارزښتونه د افغانستان د هنر په تاريخ کې ټاکلی ځای لري.

د بودا مناسبه او د ښکلې څېرې لرونکې مجسمه په هډه کې جوړه شوې ده. د دې دورې آثار د ګندهارا د مکتب په نوم ياد شوي دي. د ګندهارا په مکتب کې معنويت له هند او ماديت له يونان څخه اخيســتل شــوی دی. د دې آثارو تاريخ څلورمې، پنځمې او شپږمې ميلادي پېړيو ته رسېږي.

(٦ انځور) پربرونزوکی جوړه شوې کاسه د اوښکو د څاڅکو طرح



**تمرين**

آيا ستاســو په چاپيريال کې، لرغوني آثار پيدا شوي دي؟په دې آثارو کې کوم کوم شيان شامل وو؟

# ۴ لوست

## له هنري وسیلو سره آشنایي



**د نقاشۍ او لاسي کارونو د فعالیت د سرته رسولو لپاره کومو شیانو ته اړتیا لرئ؟په کومو وسیلو کولای شئ نقاشي وکړئ؟**
**د لاسي کار د جوړولو لپاره له کومو شیانو څخه ګټه اخلئ؟**



(۱ انځور) رنګه پنسلونه

خپلې خیالي او ذهني مفکورې د نقاشۍ، انځورګرۍ او لاسي کار په شکل سرته ورسوئ او هغه نورو ته وښایاست. د نقاشۍ او د لاسي کارونو د جوړولو لپاره له بېلو بېلو وسیلو څخه ګټه اخیستل کېږي. که د نظر وړ مواد نه وي، نو کېدای شي نورې وسیلې یې په ځای وکاروو. یا هغه ته ورته وسیلې جوړې کړو. مثلاً په اوبلن رنګ نقاشۍ کې معمولاً له برس څخه کار اخیستل کېږي. کولای شو په ګوته، سفنج او یا هغه برس چې په خپله مو جوړ کړی وي، په اوبلنو رنګونو انځورګري یا نقاشي وکړو. تاسې فکر وکړئ چې د نورو کومو شیانو په واسطه کولای شو په اوبلنو رنګونو نقاشي وکړو؟ هغه وسیلې چې د هنري کارونو لپاره کارول کېږي، په دوو برخو ویشل کېږي:



(۲ انځور) اوبلن رنګ، برس او د اوبو ګیلاس

۱-هغه وسیلې چې اثر یا نښه یې پاتې کېږي، لکه: پنسل، رنګه پنسل، سکاره، سیاهي، اوبلن رنګونه، غوړ رنګونه او. . . رنګه جوهر، اوبلن او غوړ رنګونه معمولاً د برس په مرسته د نقاشۍ او رنګه کولو لپاره کارول کېږي.

۲-هغه وسیلې چې نښه پرې ایښودل کېږي، لکه: کاغذ، مقوا یا پنډ کاغذ، رخت یا ټوکر، خټه، کودي، طبعي مواد (د ونو پاڼې، د الوتونکو بڼکې، لرګي، ډبره، . . . )مصنوعي مواد (تار، سیم . . . ) چې د نقاشۍ او دلاسي کارونو د جوړولو په وخت کې کارول کېږي.

۳-کومکي وسیلې، لکه: د طراحۍ یا انځورګرۍ تخته، خط کش، پنسل تراش، پنسل پاک، د اوبو لوښی، د ترس کاغذ (لږ څه شفاف کاغذ)، بیاتي، سریښ، شکاستیب، ورنس. . . چې د رسامۍ، نقاشۍ، رنګه کولو او لاسي کارونو په برخه کې یې کاروي. دا وسیلې کار آسانوي، خو نشتوالی یې د فعالیت د سرته رسولو مانع کیدای نشي. د هغو وسیلو څخه استفاده چې زموږ په واک کې دي، لکه: (طبیعی مواد) او د هغو موادو په ځای چې موږ ورته لاس رسی نه لرو له محیطي طبیعي موادو څخه په ابتکاري ډول ګټه اخیستل زموږ سره د کار په سرته رسولو کې ډېره مرسته کوي. یا په بل عبارت د ابتکاري وسایلو جوړول له هغه وسیلو څخه چې په واک کې مو نشته، خورا زیات ارزښت لري. که سریښ مو نه درلود له سرښناکې مادې څخه استفاده کولی شو؟ نښه پریښودونکي وسیلې د نقاشۍ، رسامۍ او رنګه کولو لپاره کارول کېږي. ځینې وسیلې سیايي لرونکي وي، لکه: پنسل، سیايي او سکاره، خو ځینې نور یې رنګه وي، لکه: رنګه پنسل، رنګه جوهر، اوبلن رنګونه، غوړ رنګونه او طبیعي پوډري رنګونه. له پنسل او سکرو څخه استفاده کول آسان دي. کولای شو د کاغذ په مخ مستقیماً پرې کار وکړو.



(۲ انځور) ابي رنګ، مویک قلم او د اوبو لوښی



(۳ انځور) د اوبلنو رنګونو ځانګړی لوښی او د اوبو لوښی



(٤ انځور) کاغذ د رسامۍ په تخته په سکاشټیپ نښلول شوی دی.

اوبلن رنګونه او جوهري رنګونه له اوبو سره باید ګډ یا مخلوط شي، ترڅو د هغو ټینګوالی یا غلظت مناسب شي او په آسانتیا سره د کاغذ پر مخ ښکاره شي. غوړ او پوډري رنګونه له خاصو تیلو سره مخلوطیږي تر څو مناسب ټینګوالی پیدا کړي چې پر یوې سطح باندې په ښه ډول وکارول شي. ترکیبي مواد د برس یا چاړې په واسطه پر سطح باندې استعمالیږي. که د غوړ رنګ ټینګوالی مناسب وي، نو رنګ په برس پورې نه نښلي او په ډېره آسانتیا له برس څخه د سطحې په مخ بېلیږي. له اوبلن او جوهري رنګونو سره چې اوبه زیاتې شي، کم رنګه کېږي. همدارنګه له غوړو او پوډري رنګونو سره چې تیل زیات ګډ شي، نری (رقیق)کیږي. د روښانه رنګونو د جوړولو لپاره همدا مواد له سپین رنګ سره مخلوطوي. په آبي او روغني رنګونو باندې د نقاشۍ لپاره باید د رنګ په ترکیب و پوهیږئ. وروسته د زیات تمرین له امله کولای شئ چې د رنګ مناسب ټینګوالی پیدا کړئ، تر څو وکولای شئ چې د برس په واسطه هغه د نقاشۍ او رنګه کولو لپاره وکاروئ.



(۵ انځور د رنګ کارولو مختلفې وسیلې.

کوم مواد پېژنئ چې د نقاشۍ یا رنګه کولو لپاره مناسب وي؟ ستاسې د ژوندانه په چاپیریال کې طبیعي رنګه مواد پیدا کېږي؟د هغې نمونې پیدا کړئ او د نقاشۍ او رنګه کولو لپاره یې وکاروئ. مواد او ښه پریښودونکي وسیلې په زیاته اندازه د رسامۍ، نقاشۍ او د لاسي کارونو لپاره کارول کېږي. ښه منونکې وسیلې، لکه: کاغذ، مقوا، یوه ټوټه لرګی، ډبله ټوټه، د کارتن مقوا، سفالي(خټین) کورني لوښي او پوزي چې د رسامۍ او نقاشۍ لپاره کارول کېږي. په دې شیانو انځورونه او نقاشي کیدلای شي که وغواړو چې په اوبلنو رنګونو نقاشي وکړو، نو کاغذ مو بایدلږ څه ډبل او پېړ وي. که چېرته کاغذ نازک وي، نو د کار په وخت کې څیرې کېږي. که په کورنیو لوښو، پوزي او یا لرګي باندې کار کوو، باید له ټینګ یا غلیظ آبي رنګ څخه کار واخلو. د لاسي کارونو د جوړولو لپاره، جوړه شوې خټه، بېل بېل طبیعي مواد، لکه: (د ونې پاڼې، ډبرې د الوتونکو بڼکې، . . .) او هغه

مصنوعي مواد چې په لاس کې یې لرئ، لکه: (سیم، تار، باطله قطی، کاغذ او باطله مقوا، . . .)
د استفادې وړ دي. تاسې کولای شئ چې له هغې څخه په خپله خوښه لاسي کار جوړ کړئ. د کار د پیل لپاره خټه سمه کښیکاږئ او په سوکونو یې ووهئ. بیا پرې کار وکړئ، خو باید و پوهیږئ چې خټه او خپل ختین لاسي کار باید په پلاستکي کڅوړه کې تاو کړئ، تر څو هوا یې ونه وهي او ژر وچ نشي (ختین کارونه باید ورو ورو وچ شي تر څو ونه چوي. له سیم څخه د لاسي کارونو د جوړولو په وخت کې باید غور و کړئ چې د سیم تېرې څوکې مو لاسونه ژوبل نه کړي. د هنري کارونو د سرته رسولو لپاره نورو وسایلو ته هم اړتیا لرو، لکه: د ترس کاغذ یا سکاشټیپ چې د لاسي کار د بېلو بېلو برخو د یوځای کولو لپاره په کاریږي. یا ترس کاغذ چې د مختلفو ډیزاینونو د کاپي کولو لپاره کارول کیږي. له بیاتي او د خیرې کولو له چاړې څخه د کاغذ او مقوا د زیاتي برخو د پرې کولو لپاره استفاده کیږي، خو د دې وسیلو تېرې څوکې ته مو پام وي چې پرې خوږ نه شئ. د اوبو د لوښي اندازه باید مناسبه او درنده وي چې د اوبلنو رنګونو د استعمال لپاره په کاریږي، ځکه چې په آسانی سره نه چپه کیږي. د نقاشۍ او لاسي کارونو له تیاریدو وروسته د رنګونو د ثابت پاتې کیدلو لپاره له ورنس څخه ګټه واخلئ. ورنس د رسامۍ د برس او یا د لو یې ټوټې سفنج په واسطه د سطحې په مخ و موښئ. کله چې وچ شي نو سریښوالی یې له منځه ځي.

**تمرین**

۱-د نقاشۍ د سطحې لپاره له کومو وسیلو څخه استفاده کوئ. د هغې په هکله په خپلو کې خبرې وکړئ.

۲-د ځان لپاره یو برس قلم جوړ کړئ. د برس قلم د جوړیدو لپاره د کارغه، کوترې او چرګ بڼکو ته او یا د آس او یا هغه ته د ورته حیوان د لکۍ ویښتانو او یو ظریف او ښکلي لرګي ته اړتیا لرئ. څارویو د لکۍ د ویښتانو یوه اندازه په تار و تړئ. وروسته بیا دغه ویښتان د لرګي سره وتړئ چې د یوه ظریف برس په بڼه جوړ شي.

۳-د اوبلنو رنګونو بېل بېل رنګونه د برس قلم په واسطه را واخلئ او د یوه ډبل کاغذ پر مخ یې کښیږدئ، تر هغه پورې تمرین وکړئ تر څو رنګونه د کاغذ پر مخ د نقاشۍ لپاره مناسب ټینګوالی پیدا کړي.





# لوست

## شکل، سطح او حجم



**په خپله شاوخوا کې چې کوم شکلونه وینئ هغه سره مقایسه کړئ.**
**زموږ په شاو خوا کې ټول شکلونه په دوو ډولونو ویشل کیږي.**

### سطح او حجم

زموږ په شاوخوا کې ځینې شکلونه یوازې طول او عرض لري چې هغې ته ((سطح)) وایي لکه د ونې د پاڼې ظاهري بڼه او ځینې نور یې طول، عرض او ښکاره ضخامت لري چې هغې ته (حجم) وایي.

سطح په دوو ډولونو ویشل کیږي:

هندسي سطحې(لومړي تصویر ته وګورئ)او غیر هندسي سطحې. (دویم تصویر ته وګورئ)په خپل شاوخوا کې کومې سطحې وینئ؟ کومې هندسي او کومې غیر هندسي دي؟

(۱ انځور) هندسي شکل (حجم)



(۲ انځور) غیر هندسي شکل (سطح)




(۳ انځور) بېل بېل ٦ هندسي حجمونه

په طبیعت کې ډېرې دایروي سطحې لیدل کېږي، لکه: د ځوارلسمې شپې میاشت او د لمرپرست گل منځ. د بشر په لاس جوړو شوو شیانو کې هم د سطحو ډولونه پیدا کېږي، لکه: قاب او د تلویزیون مخ. په طبیعت کې غیر هندسي سطحې په بېلو بېلو بڼو پیدا کیږي. د بېلگې په ډول د ونو د پاڼو مختلفو ډولونو ته او د پتنگ وزرو ته پام وکړئ. د حجمونو ډولونه هم په دوو ډلو ویشل کېږي. یو یې هندسي حجمونه او بل یې غیر هندسي حجمونه.

(۳ تصویر) او څلورم تصویر ته پام وکړئ. په خپله شاوخوا کې کوم حجمونه وینئ؟ کوم یو یې هندسي او کوم یو یې غیر هندسي دی؟

په طبیعت کې بېل بېل کروي حجمونه وجود لري، لکه: د لمر سترگه او د شمسي منظومې ستوري د انسان سر، میوه او الوتونکي.


(٤ انځور) هندسي شکل (حجم)


(٥ انځور) هندسی شکل (سطح)

د انسان په لاس په جوړو شوو حجمونو کې هم بېل بېل هندسي حجمونه پیدا کولای شو، لکه: د پنډسکو ډولونه، د قطیو بېل بېل ډولونه، ودانۍ او ........



**تمرین**

۱- د هندسي او غیر هندسي حجمونو دوې نمونې سره مقایسه کړئ.

۲- د انسان په لاس جوړ شوي او د طبیعي حجمونو ترمنځ ورته والی وینئ؟

## ۶ لوست

# په ګوتو ټاپه کول

### کولای شئ چې له هر ساده نقش څخه د خپلې خوښې شکل جوړ کړئ؟



چاپ د ډول ډول رنګه انځورونو د جوړولو لپاره یو چټک میتود دی چې د مهر او رنګ په واسطه سرته رسېږي. په لاسي چاپ کې له بېلو بېلو مهرونو څخه ډېر ساده او په چټکتیا کولای شو لویې سطحې نقاشي، رنګینې او ښکلې کړو. د چاپ مهرونه بېل ډولونه لري او د خپل چاپیریال له شیانو څخه د مهر پر ځای ګټه واخلئ. د چاپ لارې او طریقې هم ډېرې زیاتې دي. په دې درس کې لاسي چاپ له یو تیار مهر څخه په ګټه اخستنه چې هغه د ګوتو سرونه دي، سرته رسوو. له ګوتې څخه د چاپ د اخیستلو لپاره خپله ګوته په آبي رنګ یا کوم بل رنګ کښېکاږئ او بیا یې په ببره په یوه سپین کاغذ ولګوئ دا کار څو واره په مختلفو رنګونو تکرار کړئ، تر څو ستاسې د کاغذ سطحه له مهرونو ډکه شي.













وروسته له هغې چې رنګ وچ شي، نو بیا د ګوتو نښان په غور وګورئ او د خطونو په زیاتولو سره د خپلې خوښې شکل ترې جوړ کړئ.















**تمرین**

د نقاشی لپاره د خپلې خوښې موضوع انتخاب کړئ او په مختلفو رنګونو د ګوتو د چاپ لارې او د خپلې خوښې موضوع نقاشي کړئ

## ۷ لوست

# د سيمي کُرې جوړول
# ستاسې په شـاوخوا کې کوم شيان کُرې ته ورته دي؟



کره يو دايروي حجم دی چې کولای شـو لـه مختلفو موادو څخه يې جوړ کـړو، لکـه: د واليبال او فوټبال پنډوسـکي او د ميوو لـه ډلې څخه نارنج، مالټـه، کينو دا ټـول کروي حجمونـه دي. اوس غواړو چې له سـيم، ډبلو تارونـو، د رجې له تار او پړي څخه يوه کُره جوړه کړو. که تاسـې غواړئ له سيم څخه کُره جوړه کړئ، نو پام کوئ چې د سيم د تاوولو په وخت کې ځانونه ټپي نه کړئ، لومړی سيم، تار، د رجې تار او يا پړی د يوې الوچې په اندازه گرد تاو کړئ، وروسته بيـا تارونه په ډېر مهارت د هغې په شـاوخوا تاو کړئ چې يوه کُره جوړه شي.



د تشلې په شان یوه وړوکې کُره له سیم یا نخ څخه



له مختلفو موادو څخه څو ډوله کُرې تکمیل شوي دي.



له کُرې څخه یوه ښکلې الوتونکې جوړ شوې ده



په کره کې جوړ شوی کب

د کُرې له جوړولو وروسته د هغې په هکله فکر وکړئ او هڅه وکړئ چې له پورتنیو موادو څخه بېل بېل شکلونه، لکه: مېوه، گل، الوتونکي او داسې نور جوړ کړئ. دکور او ټولگي په ښکلي کولو کې خپل رول ولوبوئ. په کُرې باندې د نورو موادو په زیاتولو، لکه: (بڼکې، د ونې ساقه، صدف، د میوو پوستکي، کاغذ، مقوا . . .) د خپلې خوښې ابتکاري شکل جوړ کړئ او په پای کې کولای شئ هغه رنگه کړئ.

**تمرین**

۱- جوړې شوې کُرې ننداري ته وړاندې کړئ.

۲- د جوړو شوو کُروي شیانو په هکله سره وغږېږئ.



# لوست ۸



## د ډبرې د دورې هنر

### آیا پوهیږئ چې ډیر لرغوني هنري آثار کوم او په کوم ځای کې منځ ته راغلي دي؟

د تیــرو پــه دورې پــورې تړلي هنــري آثار چې د بشــر پــه لاس د غارونو په دیوالونو نقاشــي شــوي دي، د ډبرو په دورو پورې اړه لري. د ډبرو د لرغونو اثارو لومړنی نموني چې د ډبرو په دورو پورې اړه لري د فرانسې د((لاسکو) پــه غارونــو او د هســپانیې د (التامیرا)پــه غارونوکې پیدا شوي دي. لومړني تصویر ته پاملرنــه وکړئ، څه شــی وینئ؟ لطفاً هغه پوښــتنې چې ستاســې پــه ذهن کې پیدا شــوي ووایئ. دویــم تصویر د ډبرو په منځنــی دورې پــورې اړه لري. په دې نقاشــی کې او له هغې څخــه په مخکې



(۱ انځور) له میلاد څخه مخکې د ۱۰۰۰ تــر ۱۵۰۰ ق م په حدودو کې د فرانســې د لاسکا په غارونو کې انځورګري



(۲ انځور) د ډبرو په منځنی دوره کې د ایران په لرستان کې

دوره کې کوم تفاوتونه وینئ؟

انســانانو په تدریجي ډول پر مختګ وکړ، په بزګرۍ او مالدارۍ یې پیــل وکړ د هغوی ژوند ډېر تغییــر وکړ. علوم او مختلف هنرونه یې را منځته کړل.

۳ او ٤ تصویرونو ته پاملرنه وکړئ:

د ډبرې د نوې دورې هنري آثار له نورو دورو سره مقایسه کړئ:

(۲ تصویــر) ته پاملرنه وکړئ د ډبرې د دورې هنري آثار له نورو دورو سر پرتله کړئ



(۳ انځــور) د ډبــرې د دورې انځــور شــوی ګیــلاس چــې د ایران په شــوش کې په لاس راغلی دی.



(٤ انځــور) د ډبــرو په نــوې دوره کې د انګلستان د مالزبرې په دښته کې له ډبرو خخه جوړ شوی دي.



**تمرین**

۱- کله له خپلوانو سره ښکار ته تللي یاست؟

۲- د ښکار صحنه د کیسې یا تمثیل او یا د نقاشۍ په ډول وړاندې کړئ.

# ۹ لوست



## رنګ

### ستاسو په فکر که رنګ نه وای څه به شوي وای؟

په طبیعت کې هر یو شکل یو رنګ لري. د بشر په لاس د جوړو شوو شیانو او هم د ټولو شیانو له پاره رنګ یو پوښ دی. ځینې رنګونه په طبیعت کې ډېر زیات دي. ۱او ۲ تصویر ته پام وکړئ. انسانانو تر اوسه ۱٦ میلیونه رنګونه جوړ کړي او د رنګه کولو لپاره یې کار ولي دي.
تاسې پخوا زده کړي دي چې له درو اصلي رنګونو څخه (ژېړ، سور او شین آسماني) بې شمېره رنګونه جوړیدلی شي. دا درې رنګه له نورو رنګو څخه نه شي جوړیدلی او بیخي خالص رنګونه دي.





(۱تصویر) د طبیعت مختلف رنګونه



(۲تصویر) د طوطي رنګینې بڼکې



د دوو اصلي رنګونو د یو ځای یا ترکیب له امله دریم رنګ جوړېږي.

لاندې شکل ته ځیر شئ:





دریم تصویر و ګورئ

کیدلای شـي دا هر یو رنګ له سـپین رنګ سـره ترکیب کړو، ترڅو شفاف او روښانه شي.

څلورم تصویر ته و ګورئ.

همدارنګه کولای شو دا رنګونه له تور رنګ سره یوځای یا ترکیب کړو تر څو تت او تیاره شي. رنګه مواد په دوو ډلو ویشل کېږي. زیات طبیعي رنګونه له معدني موادو څخه، لکه: (د سکرو پوډر او د لاجوردو پوډر) او د وښو رنګونه، لکه: (د پیاز له پوټکي او د انارو له پوټکي)څخه جوړېږي. مصنوعي رنګونه له کیمیاوي موادو څخه جوړېږي.



(۳انځور) د اصلي رنګونو ترکیب د ثانوي رنګونو د لاسته راوړلو لپاره



(٤ انځور) اصلي رنګونو ته له سپین رنګ سره ترکیب چې روښانه رنګونه لاس ته راشي.



## تمرین

۱-له دویمې درجې رنګونو څخه یوه نمونه جوړه کړئ!

۲-دویمه درجه رنګونه دوه برخې کړئ ځینې یې روښانه او ځینې نور تت یا تیاره کړئ

۳- دا هر یو رنګ چېرته او د کومو شیانو د رنګه کولو لپاره کاروي؟



# لوست ۱۰

## له مېوې څخه د ډک لوښي نقاشي



### ستاسې په شاوخوا کې د نقاشۍ لپاره کومې په زړه پورې موضوع ګانې شتون لري؟

بېلې بېلې میوې د نقاشۍ لپاره ښکلې او په زړه پورې موضوعګانې دي.
د کال هر فصل ګوښې ګوښې میوې لري چې ځانګړې بڼې او خوندونه لري. د هر فصل خاصو میوو ته ځیر شئ.

(۱تصویر) په مختلفو شکلونو او رنګونو میوې چې بېل بېل جوړښتونه پکې لیدل کېږي

د هغو د رنګ، شکل او جوړښت په هکله سره و غږیږئ. د کوم فصل مېوې انتخابوئ؟د خپلې خوښې مېوې د لوښي په د ننه کې انځور کړئ. کوښښ وکړئ چې مېوې او لوښي يې لوی و باسئ او هم غالی، مېز او. . . چې مېوه پرې ایښې ده، هغه هم رسامي کړئ. په ډېر ځير او غور يې رنګه کړئ.



(۲ تصویر) په مني کې کومې مېوې رسيږي؟



(٤ تصویر) په کوم فصل کې مو مېوې د ونو په ښاخونو کې ليدلي دي؟



(۳ تصویر) د توتانو رنګ، شکل او جوړښت ته پاملرنه وکړئ دا مېوې په کوم فصل پورې اړه لري؟



**تمرين:**

د خپلې خوښې ميوې په يوې پاڼې کاغذ کې انځور او بيا يې رنګه کړئ.



# لوست



## د بیـن النهریـن، ایـران او لرغونـي مصر هنرونه

### پوهیږئ چې زیګورات څه ته وایي؟

د بین النهرین هنر: د بین النهرین تمدن سـومري، اکدي، بابلي او آشـوري قومونو د دجلې او فرات رودونو په مینځ کې منځ ته راوړ. دوی له خاموخښتو څخـه د عبـادت لپاره لوېې او څـو پوړیزې ودانۍ جوړولـې چې هغه یې د زیګورات په نامه یادولې چې لومړی تصویر د زیګورات یوه نمونه راښیي.

د ایـران هنر: د ایران هنر له اسـلام څخه مخکې په دوو برخو ویشـل شـوی دی. لومـړۍ برخه یـې د آریایانو لـه دورې څخه مخکې آثار د((سـلیک))، ((مارلیک))او((شـوش)) پـه منطقو کې چې په ایران کـې واقع دي، لاس ته



(۱- تصویر)زیګورات(زیګورات اور) پـه بیـن النهریـن کـې ۲۱۰۰ کاله له میلاد څخه مخکې

راغلي دي. دويمه برخه يې د آريايانو دوره ده چې ډېر مهم او ارزښتناك اثر يې((تخت جمشيد)) دی. دويم تصوير ته پام وكړئ.

د لرغونــي مصــر هنر: د مصر لــوی تمدن د نيل د دريــاب په څنډو كــې منځ ته راغلی دی. په لرغوني مصر كې ډېرمهم آثار د فرعون په مقبرو پورې تړلې ودانۍ دي په مصر كې تابوتونه او زياتې مجسمې د فرعون او د ملكو په شــكل جوړې شوي دي.

د مصر په قبرونو كې د ژوندانه صحنې، د غم دودونه، د جنگ صحنې، ښكار او د كركيلې نقاشۍ شوي دي. دريم تصوير ته وگورئ.

(۲تصويــر) د تخت جمشــيد دورننوتو دروازه له ميلاد ن۵۰۰ كاله مخكې





(۳تصوير) د مصر اهرامونه «دجينره اهرامونه» د ميلاد نه ۲۵۰۰ كاله مخكې.





## تمرين

۱-په پخوانيو زمانو كې يې لويې ودانۍ څه ډول جوړولې؟
د هغې د جوړولو طريقې په ياد انځور كړئ!

۲- ستاسې په فكر ولې ډيرې مهمې ودانۍ په مصر كې د فرعونيانو مقبرې دي؟

# ۱۲ لوست



## له رس (مکن) ختې شخه د حجمونو جوړول

### پوهېږئ چې ستاسې په شاوخوا کې کوم حجمونه شته دي؟

خلـك لـه بېلو بېلو مـوادو شخه، لکه: ختې، گچ، لرگي، فلز، شيشـه او . . . .
ځيني حجمونه يا ښکلي لاسي کارونه جوړوي. رس ختې د سرې خاورې او اوبو
له مخلوط کېدو شخه جوړېږي. ختې داسـې يوه ماده ده چې د مختلفو حجمونو
د جوړولو لپاره مناسبه ده. تاسې هم کولای شئ چې له جوړې شوې ختې شخه
(خو چې په لاس پورې ونه نښـلي) د خپلې خوښـې حجم جوړ کړئ. که جوړه
شوې ختې موجوده نه وي، نو د کار له سرته رسولو شخه يوه ورځ مخکې، د رس
خاوره له غلبېل (پرويزي) شخه و باسـئ او لړې او به په کې واچوئ چې د ختې
شـکل غوره کړي او بيا يې په سـوکونو ښه ووهئ چې ختې د کار کولو لپاره تياره



(۱تصوير) دختو اخښل

شي. وروسته بیا هغه په پلاستیکي کڅوړه کې واچوئ چې وچه نه شي. د کار د پیل لپاره لومړی د خپلې خوښــې موضوع انتخاب کړئ. بیا په لاس باندې خټې ته بڼه یا شــکل ورکړئ او هغه څه چې غواړئ، جوړ یې کړئ. وروســته له هغې چې ستاســې حجم جوړ شــو، د پخولو لپاره یې د تودوښې په کوره کې کښېږدئ چې پوخ شي.



(۲تصویر) د خټې دایروي کول



(۳تصویر) د خټې له غونډارې څخه د حجم جوړول



(٤ تصویر)غونډارې ته بڼه ورکول



**تمرین:**

خپله خوښه کړې موضوع، لکه: کورني څاروي یا کوم بل شی له خټې څخه جوړ کړئ!

# ۱۳ لوست



## د خپلې خوښې د فصل نقاشي

**تاسې د کال کوم فصل خوښوئ؟**
**د دې فصل ښکلاوې په خپلو نقاشيو کې**
**څه ډول ښکاره کولای شئ؟**

د کال هر فصل خپلې ځانګړې ښکلاوې لري. د پسرلي موسم شين والی او تازه ګي، له ګلانو او غوټيو څخه د ونو ډک ښاخونه، نرم او ملايم پسرلني بادونه، پسرلني بارانونه، د الوتونکو د ځالو جوړونه له ځانه سره لري. د نقاشۍ لپاره د پسرلي د موسم له موضوعګانو څخه ګټه اخيستلای شو. د اوړي د لمر ځلېدونکې سترګه، دغنمو زرين کښتونه، ميوه لرونکې ونې، اوږدې ورځې او په اوبو کې لامبل رايادوي. د منې موسم ملايم بادونه، د ونو رنګينې پاڼې، نرم بارانونه او د الوتونکو کوچېدل له ځانه سره لري. د ژمي موسم سپينې واورې، ساړه بادونه، د واورې ډکې ښکلې منظرې، په واورو کې د الوتونکو



(۱ تصوير) پسرلنی رنګ په رنګ غوټۍ



(۲ تصوير)په اوړي کې دګلو ډکې دښتې ځانګړې ښکلا لري

او ځارویو د پښو پلونه، د ونو لانده او تش ښاخونه، خړ بخن او بنفش آسمان زموږ په ذهن کې ژوندی کوي. د هر فصل ځانګړتیاوو ته په ډېر غور او دقت پاملرنه وکړئ او د هغوی په هکله سره وغږېږئ. هر یو فصل په کومو شکلونو او رنګونو ښودلای شئ؟



(۳ تصویر) د مني په موسم کې د ونو رنګ په رنګ پاڼې



(٤تصویر) واوره، کنګل، سپین رنګ، ساړه، . . . . په ژمي کې



**تمرین:**

۱-تاسې د خپلې خوښې فصل انځور کړئ.

۲- د هر فصل رنګونه سره پرتله کړئ.

# ۱۴ لوست



## د رس له خټې څخه د ګوټو د فشار په طريقه د حجمونو جوړول

### تر اوسه مو په لاس کوم لوښي جوړ کړي دي؟

د خټين حجم د جوړېدو ډېرې ساده لارې چارې د ګوټو او فشار طريقه ده. په دې طريقې کولای شـو چې بېلابېل حجمونه جوړ کړو، لکه: کاسه، غاب، پياله او ګلان په دې طريقه تيارې شوې خټې ته بايد ښه فشار ورکړ شي.

(۱- تصوير) د خميره شوې خټې غونډاري

هغه باید د غونډاري په ښه جوړه شـــي او بیا هغه د لاس په ورغوي کې کښېږدئ او د بل لاس په ګوتو هغه ژوره کړئ. د خپل خوښ شـوې شـکل په څېر یــې جوړ کــړئ. هر څومـره چې د هغې څنډې ښـکلې جوړې کړئ په هغه اندازه ښکلې کېږي. د دې لپاره چــې ختې وچه نه شــي، لږې اوبــه ورزیاتې کړئ. له هغې وروســته چې ستاســې لوښي جوړ شو، د مختلفو وسیلو په واسطه، لکه: (د خــودکار قلم پوښ او قفلي ســتن . . .) فشـار ورکړئ، ترڅو په کې بېلابېل نقشونه جوړ او لوښي ښکلي شي.



(۳ تصویر) دکاسې څنډو ته شکل ورکول



(٤تصویر) دکلولې ژورول



(۲تصویر) دکاسې دیوالونو ته شکل ورکول



**تمرین**

۱-په خپله خوښه یوه کاسه، غاب، پیاله او یاګلان جوړ کړئ.

۲-د شتو موادو په مرسته لوښي نقاشي کړئ.

# ۱۵ لوست



## د لرغوني هند، لرغوني چين او جاپان هنرونه

**تر اوسه مو د هند او لرغوني چين د هنرونو په اړه څه فکر کړی دی؟**

**د لرغوني هند هنر:** د لرغوني هند په هنري آثارو کې د معبد ودانۍ، مجسمه جوړونه، په تيږو کې توږل شوي ريليف نقشونه او نقاشۍ شاملې دي چې په بودايي او هندويي دينونو پورې اړه لري. د هندوانو په معبدونو کې، معماري او مجسمه جوړونې سره تړلي دي او يو له بله نه شلېدونکې اړيکې لري. د بودايي دين ډيرې لويې لويې نقاشۍ او مجسمې په هند کې شته دي. لومړی تصوير د هندوانو د هنري اثارو ښکارندويي کوي.

**د لرغوني چين هنر:** د چين خطاطي او نقاشي په ټوله نړۍ کې زيات شهرت لري. چينايانو د خطاطۍ او نقاشۍ لپاره له يو ډول روش او وسيلو څخه کار اخلي. هغوی د طبيعت په هکله د مختلفو موضوع گانو په اړه خپل ذهني او خيالي انځورونه



(۱تصوير)د خاجوراهو معبد(خاجوراهو)په هند کې.
د هندوانو په معبدونو کې مجسمې د معماريو په دېوالونو
او منارونو باندې جوړېږي.



(۲ تصویر)د چین هنر، د نیلوفراتي گل چې د (یون شـوینگ) اثـر دی او په لاس انځور شوی دی.

د بـرس قلـم او رنگ په مرسـته د کاغذ پر مخ یا په وریښمو باندې انځورول. په چیني نقاشۍ کې د اشغال شوې فضا او خالي فضا ترمنځ ځانگړی ارتباط او همدارنگه د خط او نقاشۍ ترمنځ د ښکلا اړیکه وجود لري. د بودایي هنرد مجسـمې جوړونې او نقاشیو زیاتې نمونې او په ځانگړې ډول د بودا لویې مجسـمې پـه چین کې لا تر اوسـه پرځای پاتـې دي. چین د چیني لوښـو په جوړولو، ښکلا او ظرافت کې نړیوال شهرت لري. د چین هنر ته په دویم تصویر کې پاملرنه وکړئ:

**د جاپـان هنر:** د لرغونـي جاپان هنر د چین له هنـر څخه خپله لار موندلـې ده. د طبیعت منظـرې، گلونه، الوتونکي، انسـانان، د ژوندانه صحنـې او جاپانـي طراحي شـوي داسـتانونه نړیوال شـهرت لري. په جاپاني نقاشۍ کې رنگونه ځلند دي او طبیعت په ښکلاییز ډول ښودل شوی دی. جاپانیانو د چین طوماري نقاشي (پر له پسې) د ژوندانه د صحنو د ښکاره کولو لپاره کاروله او طوماري نقاشـۍ یې د پېښو د ښوولو لپاره په څو برخو وویشـله. په دریم تصویر کې د جاپان د نقاشۍ نمونې وینئ.

(۳ تصویـر) د جاپان هنـر د(لوی موج په نـوم یادېـږي او د ((هوکوسـای))کړا وور جاپاني، د(توکوکاوای دوره ۱۹۰۰م)



**تمرین:**

۱- د چین، هند او جاپان په هنرونو کې کومې ځانگړتیاوې وجود لري؟

۲- په یوه اخباري نازک کاغذ باندې د خپلې خوښې موضوع انځور کړئ او یوه طوماري نقاشي جوړه کړئ.



## ۱۶ لوست



# جوړښت یا بافت

### له رنګ پرته نور کوم شیان د سطحې په شیانو او موجوداتو کې وینئ؟

جوړښت د پدیدو ظاهري پوښښ دی چې کله یوازې د لیدنې وړ او بصري ارزښت لري. لومړي تصویر ته پام وکړئ. کله په لاس وهلو هم احساسیږي او بصري لامسه یې ارزښت لري. دویم تصویر ته وګورئ.
جوړښتونه په دوو طبیعي او مصنوعي ډلو ویشل کیږي. طبیعي یې هغه دي چې په زیاته اندازه تنوع لري، لکه: د مېوو پوستکي، د حیواناتو پوستکي، د مارنو پوستکي د ونو دتنې پوستکي او . . . . . . . . . . .
چې هر یو یې خاصې ځانګړتیاوې لري. مصنوعي یې انسانان له مختلفو موادو څخه لاس ته راوړي.



(۱- تصویر) د پتنګ وزرونه او بدن دی چې بصري دي او د لمس کولو په وخت کې یې ژور تیاوې نه احساس کیږي.



(۲- تصویر) د الوتونکي د ښکو په لمس سربیره د بافت یوه نوې تجربه احساسوو.

د جوړښتونو په لیدنو درک کوو، په لمس کولو یې خپل درک بشپړوو. د لومړۍ نمونې په لمس کولو زموږ په ذهن کوم نوی درک نه اضافه کېږي، لکه: د مرمرو د تیږو په نقاشیو لاس وهل. اما په بصري- لامسه جوړښتونو کې دلیدلو له پلوه بافت ته متوجه کېږو او هم د لمس کولو په وخت کې نوی احساس را ته پیدا کېږي، لکه: د یوه الوتونکي په بدن لاس تېرول.



(۳ تصویر) د نرمو او زیږو بدنونو ډولونه د پاڼو او تنې په لمس کولو تجربه کولای شو.



(۵ تصویر) د مرمرو د تیږو بافت چې یوازې په لیدلو درک کېږي.



(٤ تصویر) د اناناس په مېوه کې ژور والي ته پاملرنه وکړئ. لمس کول یې کوم احساس را پاروي؟



**تمرین:**

۱- په خپل شاوخوا کې مصنوعي او طبیعي جوړښتونه پیدا او هغه لمس کړئ او د دې تجربې په هکله سره وغږېږئ.

# لوست ۱۷



(۱- تصویر)سفالي نقاشي شوی حجم

## د خټو د حجمونو رنګول

### په کومو طریقو کولای شئ د خټو حجمونه ښکلي کړئ؟

د خټو په حجمونو باندې د نقشونو په جوړولو سربېره د حجمونو د ښکلا لپاره یوه لاره د هغې رنګه کول دي. له رنګه کولو څخه مخکې باید لوښی وچ شوی وي. په بېلو بېلو موادو، لکه: ګیاهي رنګونه (زردچوبه)، معدني رنګونه لکه (لاجورد) چې له سرېښو سره ګډ شوي وي، پلاستیکي رنګونه او یا اوبلن

رنګونه که ولرئ، خپل ختین حجمونه پرې رنګ کړئ. کولای شئ دا رنګونه په خپله خوښه ډېر رقیق (رنګ له زیاتو اوبو سره مخلوط)او یا غلیظ (رنګ له کمو اوبو سره) مخلوط کړئ. د دې لپاره چې رنګونه راښه شي، نو له رنګه کولو مخکې یې په سپین رنګ رنګه کړئ او وروسته یې د خپلې خوښې په رنګونو رنګه کړئ. کله چې رنګونه وچ شول، نو بیا وارنس پرې وموښئ، تر څو رنګونه ثابت پاتې شي او خپله ښکلا له لاسه ور نه کړي.





(۲ - تصویر) درنګولو مرحله



(۳ - تصویر) دا لوښي په دایروي شکل په اوبلنو رنګو رنګه شوي دي



(٤ تصویر) دا لوښي له څنډو څخه د کاسې منځنی برخې ته په اوبلنو رنګونو رنګه شوي دي.

## تمرین:

له ختو څخه په خپله خوښه یو حجم جوړ کړئ.



# ۱۸ لوست



## د لرغوني یونان او لرغوني روم هنرونه

### د لرغوني یونان او روم هنرونه د نورو هېوادونو له هنرونو سره څه تو پیر لري؟

د لرغونـــي یونان هنر: یونانیانو د ورته والي یا شــباهت د هنر لومړنۍ نمونه له طبیعت څخه په لاس راوړه. د یونان ډېر مهم آثار انســاني مجســمې، د معمــارۍ ودانۍ، د یوالي نقاشــۍ، او نقش لرونکي گلدانونــه دي. د یونان دیوالي نقاشــۍ او مجســمې له منځه تللي دي. د یونان هنرمندان په نقاشــۍ او مجســمه جوړولــو کــې د انســان د بدن پــه جوړولو کې له ډېرو ښــکلو

(۱- تصویر) د اکروپولیس معبد د یونان په اتن کې ۴۵۰ ق م



(۲ تصویر) دېوالي نقاشي په روم کې ۵۰م کال

تناسبونو څخه استفاده کوي.
لومړی تصویر د یونان د معمارۍ نمونه ده.
دلرغوني روم هنر: د لرغوني روم مجسمې او نقاشي د یونان له هنري آثارو څخه کاپي شوي دي او د روم هنر د یونان له هنر څخه ریښې اخلي. رومیان د یونانیانو په شان له طبیعت څخه تقلید کوي. هغوی په نړۍ کې د لومړي ځل لپاره په نقاشۍ او مجسمه کې د ورته والي یا شباهت هڅې کړي دي. په روم کې د لویو ودانیو جوړول پیل شول.
رومیانو په دېوالي نقاشیو او موزائیک کې (د ورو او رنګه پارچو د څنګ په څنګ ایښودلو څخه چې په دېوالونو، چتونو او د ځمکې په مخ لګول کېږي) د ودانیو د ښکلا لپاره ګټه اخیستله. ۲ او ۳ تصویرونه د لرغوني روم له هنر څخه انتخاب شوي دي.

(۳ تصویر) په موزائیک جوړ شوی دی د (نبرد ایسوس) رومي کاپي له یوناني موزائیک څخه د مرمر له جنس څخه تاریخ ۱۰۰ م





**تمرین**

که وغواړئ خپله نقاشي د موزائیک په ډول سرته ورسوئ باید کوم کارونه تر سره کړئ؟

## ۱۹ لوست

# د بېلو بېلو سيمي حجمونو جوړول

**تاسي تر اوسه کبان او الوتونکي ليدلي دي؟**
**د کب او الوتونکي د جوړولو لپاره څه کوئ؟**
**څنګه يې جوړولای شئ؟**



خپلې خوښې شوې نمونې ته په غور او دقت وګورئ او يا د هغې عکس وګورئ. د هغې شکل، اندازه، تناسب او . . . خپل ذهن ته وسپارئ. وروسته د هغې په جوړولو کې د سيمي کُړې له ميتود څخه ګټه واخلئ. سيم په يوولس سانتي متره لرګي باندې تاو کړئ او يوه وړه سيمي کُړه جوړه کړئ. په دقت سره هغه شکل چې ستاسې په ذهن کې دی، پرې

(۱ تصوير)



اضافه کړئ. ترڅو هغه شکل چې غواړئ، جوړ شي. جوړ شوی کب او یا الوتونکی په هغه وسیله بشپړ کړئ چې لرئ یې. د مثال په توګه د سترګو لپاره یې د مېوو د زړي (خسته) او د وزرو د جوړېدو لپاره له طبیعي بڼکو څخه ګټه واخلئ په پای کې یا ټول لاسي کار او یا د هغه ځینې برخې رنګه کړئ.



(۲ تصویر) تکمیل شوی پتنګ



(۳- تصویر) سیمي کُرې ته د کب شکل ورکړئ.



(٤ تصویر) سترګې او لکی ورسره وصل کړئ



## تمرین

۱- خپل کارونه د نورو د ننداري لپاره کښېږدئ او په هکله یې خبرې وکړئ.

# ۲۰ لوست



## د مسيحيت هنر

### د مسيحي هنر په هکله څه پوهېږئ؟

د مســيحيت د لومړنۍ دورې هنر: د مسـيحيت په پيل کې د لرغوني روم حکومــت دا دين په رسـميت نه پېژانده او د حضرت مسـيح(ع) پيروان يې شـکنجه او ازارول. دوی د ځــان له ويرې عباداتونــه د ځمکې لاندې کوټو (زير زميني) کې په پټه تر سره کول. په دې کوټو کې د مسيحيانو د مړو قبرونه هم وو. لومړنۍ نقاشۍ يې د همدې کوټو په دېوالونو انځور کړې وې. لومړي تصويرته وګورئ. د بيزانس هنر: د مسـيحي دين له رسـمي کېدو وروسته د

(۱تصوير) د مسحيت په لومړنيو وختونوکې په زير زمينوکې انځورګري ۴۰۰ م کال



معمــاریِ هنــر او د بیزانس هنر  ورو، ورو را منځته شــو او ۱۰۰۰ کالــه یــې دوام و موند. د بیزانس کلیســا وو ته یې په رنګه موزائیک ښــکلا ورکوله. دغو موزائیک کاریو د روم او یونان له هنري کارونو څخه واټن ونیو، تر څو د مســیحي دین د هنرونو بریاوې تر لاسه کړي. دویم تصویر ته وګورئ.

د ګوتیــک هنر: د ګوتیک هنر له ایټالیې څخه پیل شــو او ټولــې اروپــا ته و غځېــد. د ګوتیک په دوره کــې، د لویو او ډېرو لوړوکلیســاوو جوړولو دود و موند چې هغه د کلیساوو د دېوالونو د نقاشیِ لپاره  مناسب نه وو، نو ځکه مسیحي هنرمندانو په کړکیو او رنګه ښیښو باندې خپل هنر ته ادامه ورکړه.

۳ او ٤ تصویر ته و ګورئ.



(۲ تصویـر) د ســانتا آپولینــاره کلیســا (د کلیســا داخلـي فضــا ((ســانتا آپولینــاره)) ۵۰۰ میــلادي



(۳ تصویر) نقش شوي کړکي (د کلیسا رنګه کړکي ((شاتره)) ۱۲۰۰ میلادي)



(٤ تصویر) د ګوتیک کلیسا باندنی برخه (د ایټالیا د میلان کلیسا ۱۳۸٦)

تمرین

۱- له خپلو خپلوانو او دوستانو سره د رنګه ښیښو او د کوټې په داخلي فضا باندې د هغو د تاثیر په هکله وغږېږئ او د خبرو پایلې په خو کرښو کې ولیکئ.

۲- له کومو تمدنونو سره چې آشنا شوي یاست. د هغو د معماریِ نمونې سره مقایسه کړئ.

# ۲۱ لوست



## له طبيعي موادو څخه د لاسي کارونو جوړول

### د خپلې خوښې شکلونه په ساده طبيعي موادو جوړ کړئ.

ستاسې په چاپېريال کې کوم طبيعي مواد پيدا کېږي؟ لکه د ونو ښکلي نري ښاخونه، دونو د تنو پوټکي، د ونو پاڼې، ګلپاڼې، د الوتونکو بڼکې، زيړې او وړې ډبرې، د مېوو زړي . . . له خپل چاپېريال څخه را ټول کړئ. خپلو را ټول شوو موادو ته په ځير و ګورئ او فکر پرې وکړئ.

(۱- تصوير) د طبيعي موادو را غونډول

وروسته وګورئ

چې د کومو شکلونو د جوړولو لپاره باید و کارول شي. د سليښنتو په واسطه
را ټول شوي مواد داسې سره کلک کړئ چې ستاسې د خپلې خوښې شکل ترې جوړ شي.
له دغو موادو څخه چې تاسې را ټول کړي دي، څو مختلف شکلونه جوړولای شئ.



(۲- تصوير) په طبيعي موادو د يوه انسان د څېرې جوړول



(۳- تصوير) په طبيعي موادو د يو الوتونکي جوړول



(٤- تصوير) په طبيعي موادو د يوه مچ جوړول

**تمرين**

۱-د طبيعي موادو له څو نمونو څخه، لکه: د ونو پاڼې، لښتې، تيږې، د بېلو بېلو زړو يا مند کوڅخه دخپلې خوښې شکل جوړ کړئ.

۲- د طبيعي ډول ډول موادو له ترکيب څخه، لکه: له تيږې، زړي او پاڼو څخه په خپله خوښه يو شکل جوړ کړئ.

# ۲۲ لوست



## د افغاني هنرمندانو پېژندل

د افغانستان د معاصر هنر بنسټ ایښودونکي څوک دي؟

### پروفیسور غلام محمد میمنګي:

استاد غلام محمد میمنګي د فاریاب ولایت په یوې مشهورې کورنۍ کې په ۱۲۵۲ کال کې وزېږېد. خدای ﷻ هغه ته په کوچنوالي کې ډېر عالي هنري استعداد ورکړی و. هغه په ډېر لږ وخت کې د امیر عبدالرحمان خان او د هغه د درباریانو پام ځان ته را واړاوه او په څوارلس کلنۍ کې کابل ته راغی. نوموړی د ډېرو غښتلو نقاشانو د لارښونو له امله یو لوی هنرمند شو. استاد په هنري برخو کې ستر خدمتونه کړي دي، د هغو له جملې څخه په ۱۳۰۲ هجري کال کې یې د صنایعو ښوونځی تاسیس کړ چې تر اوسه ډېر لوی لوی هنرمندان په کې روزل شوي دي او په هنري کارونو بوخت دي. پروفیسور غلام محمد میمنګي په نقاشۍ، رسامۍ سربېره په موسیقۍ، معمارۍ، مهندسۍ، شعر او ادبیاتو کې یې لوی لاس درلود. له استاد څخه ډېر هنري آثار پاتې شوي دي چې د هېواد په دننه او بهر کې ساتل کېږي. د ده د نقاشۍ څو آثار د افغانستان په ملي ګالري کې ساتل کېږي. استاد د ۱۳۱٤ کال د لیندۍ (قوس) په میاشت کې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او په کابل کې خاورو ته وسپارل شو.





## استاد برښنا

مرحوم استـــاد عبدالغفور برښنا د افغانستان ډېر تکړه او غښتلی هنرمند و. استــاد برښــنا په ۱۲۶۸ کال په کابل کې وزېږېد. د حبیبیې په لیســه کې یې خپل تحصیلات بشــپړ کړل او د عالي هنري تحصیلاتو لپاره لویدیځ المان ته واســتول شو. خپل عالي تحصیلات یې د المان د ښــکلو هنرونو په اکاډمۍ کې د شــپږو کالو په موده کې پای ته ورســول او بېرته وطن ته راســتون شو او په هنري او فرهنګي کارونو بوخت شــو. برښــنا په نقاشۍ کې یو وتلی هنرمند و. سربېره پر نقاشــۍ په موســیقۍ، تمثیل، او د ډرامــو د تمثیلي ټوټو په لیکلو کــې یې لوی لاس درلود. استاد برښنا د افغانستان معاصر هنر ته تر یوې کچې ولسي بڼه ورکړه. د افغانستان بېلې بېلې تاریخــي صحنــې او د افغانســتان د خلکو کــړو وړو ته یې مراجعه وکــړه او د ټولنې د ټیټې طبقې معاصر هنر یې ور دننه کړ. اســتاد برښــنا د امکان تر پولې هڅه وکړه چې ډېر ســوچه افغاني رنګونه په افغاني سوچه موضوع ګانو کې وکاروي، تر څو افغاني هنر د اروپایي هنر له اغېزې جلا کړي. د اســتاد برښــنا آثار لرغوني تصویرونه، طبیعي منظرې، فولکلوریکې موضوع ګانې او د پېرتریتونو رســمونه ټول د خپلو خلکو د هویت څرګندوی دي. اســتاد په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې د ٦٦ کالو په عمر له دې فاني نړۍ څخه ســترګې پټې کړې او په کابل کې خاورو ته وسپارل شو.

## استاد غوث الدین

اســتاد (غوث الدین غوثي) د غلام محی الدین زوی په ۱۲۸۹ هـ .ش. کال کې یې په کابل کې سترګې و غړولې. ده ابتدایي تحصیلات په غزني کې سرته ورسول. ځوان غوث الدین په ۱۳۰۹ هــ . ش. کال له یوې څلویښــت کسیزې ډلې سره د صنایعو په ښوونځي کې د نقاشۍ د هنر د زده کړې لپاره شامل شو. تر فارغېدو وروسته په همدې

لیسه کې د ښوونکي په صفت وګمارل شو. بیا د مخابراتو په وزارت کې د پستي موزیم د مدیر په حیث و ټاکل شو. په ډېرو زیاتو پستي ټکټو کې د ده آثار موجود دي. په قندهار کې ډیرې مهمې او تاریخي پېښې د ده په آثارو کې لیدل کېږي. دا آثار شل هنري اثرونه دي چې دریالیزم او رومانتیزم په سبک انځور شوي دي. استاد غوث الدین په ۱۳۶۱ هـ ش کال کې د هنرمندانو د اتحادیې رئیس و. د ده آثارو په آسیا، افریقا او په مصر کې لومړۍ جایزې تر لاسه کړي دي. همدارنګه د ده آثارو په هندوستان او بلغاریا کې هم جایزې ګټلي دي. د آثارو شمېر یې له (۲۰۰۰) تر (۲۵۰۰) پورې رسېږي. هغه د پوهنې وزارت د هنر نښان او ربښتین نښان هم ترلاسه کړي دي. استاد د ۸۵ کالو په عمر په امریکا کې مړ او په هغه ځای کې خاورو ته وسپارل شو.





**تمرین**:

تاسې په خپلو ولایتونو کې کوم هنرمندان پېژنئ؟ د مهمو آثارو نومونه یې واخلئ!

# د افغانستان له ملي موزیم سره پېژند ګلوي

موزیم داسې ځای یا ودانۍ ده چې د یوه هېواد تاریخي او فرهنګي آثار په کې ساتل کېږي. د هنري او تاریخي نمونو ساتل په فرهنګي لحاظ د ډېر ارزښت وړ دي. دولت د تاریخي آثارو د ساتنې لپاره موزیمونه ایجادوي. د افغانستان د ملي موزیم بنسټ په ۱۲۹۲ هـ .ش. کال کې د «عجایب خانې» په نوم کېښودل شو. په لومړنیو وختونو کې په هغه کې خطي نسخې، د قرانکریم تفسیرونه، په لاس ګنډل شوي توکي، حربي وسیلې، بیرق او . . . ساتل کېدل. دا آثار د ۱۳۰۷او ۱۳۰۸ هـ ش کلونو پېښو او بریدونو لاندې راغلل او پاتې شونې یې په ۱۳۰۸ هـ ش کال کې یوې بلې ودانۍ ته یووړل شول او د کابل د موزیم تر عنوان لاندې یې خپل فعالیت پیل کړ. په ۱۳۳۹ هـ ش کال کې د یونسکو د هئیتونو په مرسته د موزیم تشکیلات د علمي معیارونو په پام کې نیولو سره اصلاح کړای شول. د کابل موزیم په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې د افغانستان د ملي موزیم په نوم یاد شو.

په ۱۳۵۳ هـ ش کال کې د هغه الماری او ویترینونه په عالي شکل ډیزاین شول، تر څو چې آثار یې ننداري ته کښېښودل شي او نوي ځانګې په کې جوړې شوې چې پر هغې سربېره هنري آثار یې فهرست بندي هم شول. د کورنیو جګړو په پیل سره ملي موزیم مناسبه پراختیا ونه موندله.

د افغانستان په ملي موزیم کې د هېواد د بېلو بېلو سیمو ډېر زیات شمېر آثار چې د مختلفو پېړیو پورې اړه لري، (لکه: د ډبرو دوره، د برونزو دوره د اوسپنې دوره) ساتل کېږي.

سربېره پر دې د لومړنیو مدنیتونو یو زیات شمېر اثار، لکه: د کریکو باختري مدنیت کریکو- بودیك مدنیت او د ګندهارا مدنیت په دې موزیم کې ساتل کېږي.

## د اووم ټولګي د منابعو فهرست


۱- د ماشومانو او نویو ځوانانو د نقاشۍ د تدریس لارښود، د غلام محی الدین شبنم غزنوي اثر، ۱۳۸۰ هـ ش کال

۲- د لومړنۍ دورې د لومړیو، دویمو او دریمو ټولګیو د هنر د تدریس لارښود. کود نمبر ٤- ٥۳ و ۱۳۸٥

۳- د طراحۍ او نقاشۍ د طریقو لارښود. رویین پاکبار

٤- د تجسمي هنرونو جهاني مسلکي او حرفوي کود ۲۱- ۳٥۸، ۱۳۸٦

٥- د تجسمي هنرونو اصول، ډاکتر محمد حسین حلیمي

٦- طرح او شکل (کلاس مقدماتی من درما هاوس)، یو هانس ابتن.

۷- سود طراحي فنی و حرفوي کود ۹۲- ۳٥۹، ۱۳۸٦

۸- د ابتن د رنګ کتاب.

۹- د لاسي چاپ کارګاه ۱ فنی حرفوی کود ۲۰- ۳٥۸، ۱۳۸٤

۱۰- د هنر دایرة المعارف، رویین پاکبار.

۱۱- د هنر تاریخ، ارزښت، کامبریج، د تهران نشرات، تهران، ۱۳۸۰

۱۲- د نړۍ د هنر تاریخ، فنی او حرفوی کود ٤۰- ۱۳۸٥ او ۷- ٤۷۰، ۱۳۸٦

۱۳- په تاریخ کې د هنر سیر ۱، د پوهنځۍ نه مخکې کود۳- ٥۹٤، ۱۳۸٦

۱٤- افغانستان (د مقالو مجموعه) ژباړونکی هوشنګ اعلم او مرتضی اسعدي

۱٥- د افغانستان د تاریخ فشرده فاروق انصاری د مطالعاتو مرکز، کابل، ۱۳۸٦

۱٦- د افغانستان مختصر تاریخ، علامه عبدالحی حبیبي.

۱۷- د خط تاریخ او د افغانستان لرغونې لیکنې. علامه عبدالحی حبیبي.

۱۸- موزیم پیژندنه او د افغانستان د موزیمونو سره ډیپارټمنټ اتنو ګرافي او لرغون پېژندنه، د کابل پوهنتون د اجتماعي علومو پوهنځۍ، پوهندوی محمد رسول باوري- کابل ۱۳۷٥ کال.